# یادونه او دردونه



څۀ مِ سُوزو ساز د مینې ، د وفا جفا خبرې
زۀ پِه زړۀ ټکورومه ، زۀ پِه روح قلارومه

ایم طارق سحرؔ

دکتاب نوم : یادونه او دردونه

دمصنف نوم : ایم طارق سحرؔ

چاپ کونکے : نیو سهیل پریس
مردان فون :61709

د چاپ کال : اګست ۲۰۰۱ء

کمپوزنګ : شاه کمپوزنګ سنټر
اسد مارکیټ نیو اډه مردان

شمیر : ۱۰۰۰

بیعه : ۱۲۰ روپۍ

دموندلو درک : ٥ پښتو اکیډمی پیښور یونیورسټی
: ٥ یونیورسټی بک ایجنسی خیبربازار پیښور
: ٥ لوندخوړ بازار

# ترون

دخپلے سینے ، غم، خُوږ، ارمان ، او

احساس په نوم

چه ماله یادونه او دردونه راوړی

---

د سترګو تُور ځما خوږ یږی

ما د جانان دغمه ډیر ژړلی دینه

# سریزه

"یادونه او دردونه" دبناغلی ایم طارق سحرؔ دریمه شعری مجموعه ده په لږ وخت کښې دشاعرئ درے مجموعې شائع کول ددے خبرے ثبوت دے چه طارق سحرؔ یو اړخ ته قادرالکلام شاعر دے نو بل اړخ ته دخپل شعرسره دهغه مینه هم څرګنده وی، بے شکه چه خپل شعر سره مینه دهرچا وی ولے دغه مینه هم قسمونه لری ـ دطارق سحر مینه دخپل شعر سره په دے ښکاری چه دے پخپل تخئیل مئین دے او په تخئیل کښے ئے چه دکوم آئیډیل ژوند او انسان کامل صورت دے یا د ژوند کوم رنګ دے په هغے پسے دارمان یو غږ دے یوه نعره ده دانعره دے پخپله هم اوری او اوروول ئے هم غواړی خو دسحرؔ په شعر دقنوطیت په لور رجحان ددے خبرے ګواهی ورکوی چه په دے آباده آبادی

کښې د ژوند موجود صورت ده ته دلړې دښتې په حیثیت ښکاری هغه انسان چه ئې لټوی چرته هم دنظر په حد کښې نه ښکاری که څه واسطه ئې داسې چاسره پریوتی هم ده نودهغه یادئې په ذهن روح او زړهٔ باندی نقش پاتې شوې دې۔

سحر صاحب دداخلیت یو بالغ نظر شاعر دے، خو رومانیت او فلسفه هم لری دمینې تخیل ئې ډیر لوړ دے وائی۔

راشه ! راشه! دلربا ډیره لږه زندګی ده
شه وفا، وفا، وفا، ډیره لږه زندګی ده
زهٔ به نهٔ یم په دنیا، تهٔ به نه ئې په دنیا
مینه، حسن به تالا، ډیره لږه زندګی ده

یادونه او دردونه، ددغه تخیئلی کامل صورت دموندلو یو لټون ښکاری تکامل او کاملیت پخپل رنګ کښې پخپله تخیلی دی۔ ددې ثبوت په ژوند

موندل که ناممکن نه دی - خو ډیر ګران دی-
له دغه ارمانه له دغه یاده له دغه درده دسحرؔ د شعر مضمون جوړ شوے دے-

طارق سحرؔ صاحب یو حساس بنیادم دے او په موجوده معاشره کښې دحساس بنیادم ژوند اکثر ګران وی شعر وادب داحساساتو داظهار لاره ده خو که وسیله دچانصیب نشی نو بیا دردونه او پریشانئ په مخه راځی-

دابنهٔ خبره ده چی سحرؔ ته قدرت دشعر وئیلو صلاحیت وربخښلے دے- کومے خبرے چه داظهار صورت ونهٔ مومی نو هغه په ذهن کښے داسی هیجان پیدا کړی چه سړے دکاره وباسی ولے شاعر دخپل زړهٔ غُبار دشعر په واسطه ویستلے شی او په شعر زړهٔ سپکولے شی-

یادونه او دردونه دمعیاری شاعرئ یو بنکلے

نمونے سره سره دفکر دیو مخصوص مزاج او مضمون رنګ هم لری۔ "دخوږ په غاړ" "ځما دلری کلی یاره!" خپلے ناوے ته، "هیڅ هم نه ده زندګی" کله خنګه کله خنګه" ډیره لږه زندګی ده" ئے یو عجیبه آهنګ، تخیل ، او خوږوالے لری چه حقیقت پسندئ ته هم ورته دی۔ بائد چه هر لوستونکے داسے شاعر یوازے دمطالعی په غرض وخت تیرولو بهانه نۀ کړی بلکه دیو بے قراره روح او بے قراره جذبه تزنیدل محسوس کړی۔ او په تولنه کښے دداسے پټواو ښکاره دردیدونکو حالاتو له عواملو ځان خبر کړی ، کوم سره چه ښاغلی سحرؔ مخ دے او دهغَه احساس، احساس او کړی چه شاعرئے په اظهار مجبوره کړے دے که سحرؔ په شان هر شاعر په صداقت خپلو جذبو ته داظهار صورت ورکړی نو امید کیدے شی چه شاعری په

ربنتیا دمعاشرتی داصلاح سبب اوګرځی۔ او دشعر مصدیت یوازے د وجود دپالنے ترحده محدود نه شی۔ او دروح دصفائی دعمل ذریعه هم شی۔ "طارق سحرؔ دحقیقت ، مقصدیت او مینے یو قادرالکلام شاعر دے"۔

مننه

ډاکټر راج ولی شاه خټک

ډائریکټر پښتو اکیډمی پیښور یونیورسټی

۱۱ اپریل

کال ۲۰۰۱ء

# خپلے خبرے

"یادونه او دردونه" ځما د کلام دریمهٔ مجوعه ده ددے نه مخکښے "د دشت لارویے" او ، ژوند یو سراب" دپښتو ادب دپاره ځما لیکونه دی "یادونه او دردونه" ځما د خوانے او پاکے سینے دارمانونو ، احساسونو او دردونو یو نهٔ هیرید ونکے اونه روکیدونکے اثر دے، زهٔ یوځل بیا وایمه چه زهٔ شاعر نه یم یا په کتاب لیکولوخلقو ته ځان هم نه ښائیم چه زهٔ دائیم خو دفلسفی غنی خان داخبره جوړے ډیره تیک ده چه شاعر څه وی؟

داسے :-

تن ئے سُر رباب چه دقسمت ګوتو کښے هنګ کوی
حله ئے دګونګرو څه د جانان په پښو کښے شرنګ کوی
دے دِ ګوتے پورته کړی نامه دے د یار اولیکی
څهٔ چه قلم نه لیکی هغه دِ خمار اولیکی

قرآن پاک کښے هم دمینے ښکاره تشریح شوے ده۔ مینے ته اُلفت او حُب وئیلی شوی دی اوشهوت ته شهوت یعنی مزه وئیلی شوی ده۔

دسورة انفال په آیت نمبر۶۳ کښے خدائے پاک وائی

**والف بین قلوبهم لو انفقت مافی الارض جمیعاً ما الفت**

**بین قلوبهم ولکن الله الف بینهم ط انه عزیز حکیم ০**

" اومینه ئے واچوله په مینځ ددوی کښے ، که خرچ کړے وے تا هغه ټول مال چه په زمکه کښے دے نو هم مینه دِ نه وه راوستے په مینځ دزوړنو ددوی کښے ، لیکن الله پاک مینه راوسته په مینځ دزړونو ددوی کښ، بے شکه الله پاک ډیر زور آور او حکمتونو والا دے۔

دمینے فلسفه ددے آیت نه واضح ده د انسان زړه ته مینه دالله پاک ورکړه ده۔

مینه شهوت نه دے، جذبه او خواهش نه دے مینه ایمان دے اعتبار او انسانیت دے۔

مینه که ،یحر . .ں که حقیقی وی مینه یو دولت دے عموماً مجاز کښ حنیښ وی وائی چه کله دادنیا او دین یو شی نو دانسان دپاره هله یو کور جوړیږی۔

لکه څنګه چه دپښتو یو شاعر اشرف مفتون وائی۔

لیونی حسن، نورانی سترګو کښے
ماته د خدائے حسن وصورت ښکاری

میر تقی میر په خپلو کلیاتو کښ په صفحه نمبر ۵۷۰ کښے وائی

شاعری شیوه ہے شعار اخلاص
دین ومذہب ہے مرا پیار اخلاص

شعر کښې حُسن ، مینه ، جانا ن ، خمار، ژوند، انسان، دنیا، احساس، درداو ځنې ګنړې داسې نورې خبرې چه ددې کائنات سترې برخې دی، دحسن ، مینې اوجانان فلسفه څۀ عجیبه نه ده خدائې چه کله دنیا پیدا کوله دغه وخت دَ دې کائناتو خمیر کښې ئې حُسن اچول ضروری ګنړلې دې او اچولې ئې دې ، دغه حُسن د کائناتو په هر څیز کښې سپړ دلې په نظر راځی مونږ که اوګورو د ورځې خپل ښائست ، د تورې شپې خپل ښائست دغرونوبوټو او انسان خپل ښائست دې او داښائست دخالق دتخلیق یو اظهار او خدائې هم ښکاری دکائناتو هر څۀ کښې حُسن دې او دحُسن خوښې د فطرت خوښې ده ځکه شیخ سعدی وائی

"هر ورقے دفتر یست معرفت کردګار"

دکائناتو ددې دفتر هره پاڼړه دخدائے پیژندګلو ده ، حُسن او مینه د هر چا خوښ وی ځکه دا دانسان فصرت دے او فطرت دانسان خمیروی ځکه چه د انسان وجود هم د حُسن په تومنه دنیا ته راغلے دے ځکه انسان که هر کله او هر چرته وی دمینې بنیاد ئې حُسن دے او دمینې او حسن نه هیڅ خوک مخ نه اړوی ـ

خوشحال بابا وائی

ذرے دا نۀ چه داسې بریښنې منوره
که پوهیږے دا رڼړا دے ده نه نمره

داسې ښکاری چه مینه او حُسن دکائناتو رڼرا ده د ژوند دهر.

رخ او درد انتها هم په مينه کښې وی ، او مينه چه هر چرته وی هغه
هر څه خوارهٔ وی داعام خبره ده چه چرته مينه وی هلته ، غمونه ،
يادونه او دردونه وی ځکه خبرو کښې سوزوساز راشی يو انګريز
شاعر (Shalley)هم وائی ۔

"Our Sweetest Songs are Those That Tell of Sadest thougth"

" زمونږ هغه سندرے دهر څهٔ نه خوږے وی چه د غمونو
واندیښنو دانتها سره پیدا شوے وی" دشعر ژبه هسے هم خوږهٔ وی
خو مينه ، سوز وساز او دردونه چه کله په شعر کښې راشی هغه ډير
زړهٔ راښکونکے شی۔

" يادونه او دردونه " ستاسو مخښنکے دی ،کره کتنه پخپله
اوکړئ په آخر کښې زهٔ د پښتو ادب د لوړو ليکو لو ډاکټر راج ولی
شاه ختک ډائريکټر پښتو اکيډيمي ، او دخير نے په کار مامور ،
سلمیٰ شاهين او ډاکټر پرويز مهجور ډيره ډيره مينه کوم چه حما د
ادبی دنيا ملګری هم دی او ماته په کتابونو وخت په وخت ليکنے
کوی۔

د زړهٔ د تَل نه يو ځل بيا د دوی مننه کوم

په مينه

ايم طارق سحرؔ

اتوار ۱۲ اپريل کال ۲۰۰۱ء

## " لا اله الا الله "

**لا اله الا الله، لا اله الا الله، لا اله الا الله**

تهٔ یکتا ئے ته بادشاه ئے **یا الله، لا اله الا الله**

تهٔ بادشاه د بادشاهانو، تهٔ آقا د مخلوقاتو

بل معبود نشته آقا، **لا اله الا الله**

لویه خداي لرے، څومره لوئے نظام لرے

څومره ښکلے نوم دے ستا یا الله لا اله الا الله

بل چاته چه تیښ شی، بیا بقا کله موندلے شی

تهٔ خالق ئے زهٔ به کړمه ستا ثنا لا اله الا الله

تهٔ غفور ئے تهٔ ودود ئے تهٔ رحمان ئے هم رحیم ئے

ما فقیر ته پام کړه د شاهانو شاه لا اله الا الله

مینه دے پیدا کړله زهٔ شومه زخمی زخمی

تهٔ ځما ئے دلربا، لا اله الا الله، لا اله الا الله

# ﴿ اے محبوباً عربی ﴾

اے دلربا عربیؐ، اے محبوباً عربی
څو مره ښائست لرې ته، اے باوفا عربی

ستا دنامے نه ځار شم ستا د نامے لوګے شم
ئے حجازی صحرا کښے، ښکلے خوبا عربی

ستادی خوارۀ یادونه، ستادی خوږے خبرے
ځما د زړۀ دلربا، ئے مصطفیٰؐ عربی

تۀ لرے ئے زۀ لرے، زۀ جدایم ته جدا
تۀ عربی، زۀ عجمی، خوئے ځما محبوبا

د تا په حسن زۀ مئین یمه له ډیرے مودے
له تا نه لرے لرے، له تا جدا عربی

## ☆ ...... مینه مینه مِ ایمان دے ......

لا تر اوسه ستا امید کړم لا تر اوسه انتظار کړم
ما رنځور لره لږ راشه ستا یادونو ډیر بیمار کړم

م خزان په ژوند راغلے م غوټئ تولے رژیږی
څۀ دردونه د دنیا دی څۀ ستا مینے تار په تار کړم

دی رازونه هر عمل کښنے ورکوی بدلے پخپله
د یار مینه گناه نه ده وخته تاولے لتاړ کړم

مینه مینه مِ ایمان دے محبوبا ځما خپل ځان دے
که م تن که م دنیا ده محبوبا نه به ئے ځار کړم

د یار حُسن د یار ژُلفو یمه بند په بند ترلے
مینه نه وه یو زندان وو محبوبا پرِ گرفتار کړم

ستا په هجر کښنے سوزیږم ستا په یادو کښنے دردیږم
ما سحرؔ لره که راغلے اے دلبره تا به یار کړم

# "غمونه"

ځما د زړهٔ کوډله هغسې تيا رهٔ پرته ده
دا خوشې کُور ځماد ژوند د اوسيدلو نه دے

دومره غمونه د دنيا دی چه م زړهٔ ستړے شو
د دردہ ډک زړګے ځما د خنديدلو نه دے

## تہ راځے اوکنه

لا زۀ ډوبيږم لا درديږم، تۀ راځے اوکنه
لازۀ سوزيږم ايرے کيږم ، تۀ راځے اوکنه

ستا ښکلو سترګو ښکلی حسن څما زړۀ وړے دے
ساه رانه حيزی رۀ مړکيږم تۀ راځے اوکنه

بيا به لټون راپسے کړے او زۀ به نۀ يم ګُلے
خواله لږ راشه رخصتيږم تۀ راځے اوکنه

زۀ ستا دنيا يم ستا ژوندن يم ارمانونه به کړے
بيا به دِ ډير ډير زۀ ياديږم تۀ راځے اوکنه

هلته به تول څما سره وی ګُلے ستا يادونه
تۀ ما سحرؔ لره لږ راشه لوګے کيږم تۀ راځے اوکنه

دا نَشه نَشه
چه گرزم
دا خُمار خُمار
چه گرزم
لا پرواه
چه له دنیا یم
لا پروا
له کُل جهان یم
دا
پریشان غوندے
چه بنکارم
دا تنها غوندے چه بنکارم
دا شراب م
دعشق ښبنلی
په کاسو او په جامونو
دیار مینه کښې نَشه یم
هر یو رګ

په

هر یو نَس کښې

مینه مینه م ګرز یږی

څما خیال کښې

یو جانان دے

دا دنیا راته هیڅ ښنکاری

دا دنیا راته زندان دے

چه

زړګے ترے

الوت غواړی

چه په لُور د جانان لاړ شم

شمه مینه تولہ مینه

یار څما

او زۀ د یار شم

# خَزانَه! ډیر بے وخته!

تول ارمانونه امیدونه م په زړهٔ پاتے شو
ښکلے غوټئ م د ژوندون په مړاویدو راغلے

خزانه ډیر بے وخته راغلے د ځوانئ په بهار
پاڼے م زیړے غوندے شوے په رژیدو راغلے

ما دنګه غاړه دچنار غوندے ښائست لرلو
څانګے م اوچے شوے په ټیټیدو راغلے

ځما په سترګو کښے د حسن جهانونه پراته
خوږے مسکئ سترګے ځما په ژړیدو راغلے

هغه شوخی ، هغه مستی او رنګینی نه لرم
توله دنیا مِ د ژوندون په ورانیدو راغلے

# فریبونه

ما ډیره مینه اوکړه، ما سم یار نهٔ دے موندلے
ساقی خو شراب راکړی ما خمار نهٔ دے موندلے

دا دنیا ښکلې دنیا ده، تش رنګونه فریبونه
ما تلاش دجانان ډیر کړو ما دلدار نهٔ دے موندلے

هیڅوک نشته چه خپل غم زهٔ وابنکاره کړم
په دے ګرده دنیا کښے، ما غمخوار نهٔ دے موندلے

په هر لوری چه قدم ږدم وینے کیږم زخمی کیږم
ازغی ازغی دنیا ده ما ګلزار نهٔ دے موندلے

مینه نشته خلوص نشته تول تراخهٔ تراخهٔ خوندونه
دلبری چرته کښے نشته ما قرار نهٔ دے موندلے

## واوړه محبوبا ځما نه واوړه!

اوښکے مے کړے اوچے پرهرونه م ګنډلی
ستا ظلم چه زور شو په زار زار م دی ژړلی
پریږده چه اوده شم ما دغم شوګیرے کړی
ستا په انتظار م دواړه سترګے سترے شوی
زړهٔ ځما نازک، ما په سلګو سلګو ژړلی
لږ وختونه اوشو چه سلګئ م اودریدلی
زړهٔ م لا زخمی دے پرهرونه، پرهرونه
روح او بدن دواړه محبوبا م دردولی
شور م سرته مه کړئ زهٔ له هجرَ سترے سترے
لو یه شوګیره وه ما خوبونه نهٔ دی کړی
سترے یم محبوبه ستا په مینه کښنے زړهٔ سترے
مه م تنګوه تا مِ په مینه ډیر خندلی
واوړه محبوبا ځما نه واوړه چه آرام کړم
ما سحرَ په مینه ډیر خُوبان دی ازمیلی

# ژوند

څهٔ دے؟ څهٔ دے ؟ ژوندون څهٔ دے؟

تش

دشپو ورځو يوتگ دے

تش

خوراک او تش خوبونه

تش دردونه

فريادونه

تل تراخهٔ تراخهٔ يادونه

څهٔ نيمگړے اميدونه

څهٔ بيسياره اميدونه ، ارمانونه

دا ژوندون دے

بے صبرى ده

تش حرص

اوپکښے طمع

څومره ډير زيات فريبونه

ژوندون

تش ددولت نوم دے؟

ژوندون غم دے
تش دخیتے
او دځان نه ځاریدل دی
انتظار دمستقبل دے
څۀ خندا او څۀ مستی ده
ډیر فکرونه
ژوند-------
یو اُور دے
سوزیدل اوکړیدل دی
رسوائی ده
بدنامی ده
پریشانی ده
تش غمونه
ژوند ژړا ده
دژوندون معنی دا
نۀ ده!
ژوند محبوب ته رسیدل دی
ځان په ژوند فناکول دی
په دے ژوند بقا موندل دی

# ...... نهٔ پوهيږم نهٔ پوهيږم ......

داڅرونړ دي او که درد دې يا دغم لويه قصه ده

داژوندون دے که غمونه که د درد يوه حِصه ده

نهٔ پوهيږم، نهٔ پوهيږم، چه داڅهٔ دی ولے؟ ولے؟

بس تيره به قيصئ شی دابے خونده افسانه ده

# خپلے ناوے ته!

دا وختونه به هم تیر شی دا خوبونه به هم تیرشی
داځوانئ به خاورے خاورے دا وارونه به ټول هیر شی
تلے څومره زمانے دی، څومره خلق خاورے شوے
ستا سلګرے دژوندون به په یو تُور زندان کښے ګیرشی
اے څما د زړهٔ دنیا اے څما د ژوند سلګرے
بیا لټون به راپسے کړے زهٔ به نهٔ یمه دلبرے

لټوے به څما نخښے زهٔ به تورے خاورے شوے
یادوے به هر احساس م زهٔ به خاورے ایرے شوے
هر ساعت به غم زپلے، پریشانه، پریشانه،
دا ښائسته ښکلے وجود به په مرګی ئے ذرے شوے
زهٔ به ورک شمه له تانه اے څما د ژوند سلګرے
ارمانونه به څما کړے زهٔ به نهٔ یمه دلبرے

شپه او ورځ به دے یادیږم په زاړو رارو به ژاړے
څما مینه یادوے به په ښیښو ښیښو به ژاړے
ستا به روح اوسینه دواړه څما یادو کښے دردری

بے قراره به دے روح وی په سلگو سلگو به ژاړے
شے به ډیره ستړے اے ځما د ژوند ملگرے
بیا موندل به ځما گران وی زهٔ به نهٔ یمه دلبرے

بے اسرے اسرے به ناسته بے نوا غونډے به ښکاړے
دے ښائسته ښکلے دنیا کښے تهٔ رسوا غونډے به ښکاړے
دا تور سر به دے سر تور شی بیا به کړے ځما سوچونه
شی یوازے به دے عمر بیا تنها غونډے به ښکاړے
هر احساس به دے سوزیږی اے ځما د ژوند ملگرے
په یادونو به شے ستړے زهٔ به نهٔ یمه دلبرے

زهٔ به نهٔ یمه په غاړو، دریابونه به دے یوسی
تهٔ به ورکه په دنیا شے تُور موجونه به دے یوسی
تهٔ نعرے به بیا ځما کړے هغه وخت چه تهٔ ډوبیږے
زمانے به دے کړی ډوبه تُور بحرونه به دے یوسی
هر زمان به یادوے م اے ځما د ژوند ملگرے
جهانونه به بیا گورے زهٔ به نهٔ یمه دلبرے

دی دنیا کښې چې شې تنګه ارمانونه به ځما کړې
ځما مینه به تهٔ غواړې احساسونه به ځما کړې
خوږ وی به دې یادونه، دردوی به دې غمونه
ډیره ډیره به نیمګړې حسرتونه به ځما کړې
وینې وینې به دې زړهٔ وی اے ځما د ژوند ملګرې
بیا بې واره به ژړیږې زهٔ به نهٔ یمه دلبرې

هر ماښام به انتظار کړې د راتلو او زهٔ به نهٔ یم
کړې به ځان ذرې ذرې په ژړیدو اوزهٔ به نهٔ یم
ځاے به خوشې ځما پروت وی هر ماښام به وی غمونه
ارمانونه به کوې ته، دلیدو او زهٔ به نهٔ یم
ځان سپیرهٔ سپیرهٔ به ګڼړې اے ځما دژوند ملګرې
شې به تول عمر یوازې زهٔ به نهٔ یمه دلبرې

بیا به خلی ته م ژاړې یادوې به تیر عمرونه
ښکلوې به تورې خاورې ژړوی به دې غمونه
ښکلوې به م خزې بیا، ښکلوې به هر یو کاڼړے
بهارونه به ډیر راشی وبه نهٔ سپړې ګلونه
بیا به خلی ته م ګورې د سحر د ژوند ملګرې
تورو خاورو کښې به پروت یم زهٔ به نهٔ یمه دلبرې

## ...... ☆ داخنګه دلربا وې ☆ ...

تول ژوندمِ داسې تیر شو
ستا په یادو کښې دلبرې
ستا حسن نه وو
اُور وو
داغونه ئې سم راکړه
تۀ خولاړې
لاپروا شوې
په مابانده
اُور بَل دې
یا دیرِی هم دې نه
مِ د معصوم زړګی خبرې
په زړۀ ئې
تکه توره
بیا خبرله هم رانغلې
داخنګه دلربا وې؟
د دروغو دې
وعدې کړې

م

وح په تن دننه

ستا په یادوکښې دردیږی

ش درد دِ راله راکړو

ۀ دے پریښودم یوازے

اتلے م په زړه ئے

ول عمرونه،

اوخته شو دلبرے

ه ځما په لُوررانغلے

ختونه تیروم

ستا په خوږو خوږو یادونو

سمت به ځما دا وی

ے نوا دلربا پریښنوم

ۀ رُسوا دلربا پریښنوم

یا خبرله هم رانغلے

اته څنګه دلربا وے

اته څنګه دلربا وے؟

## ...... ☆غزل☆ ......

سترگې م هم خوښې دي دزړهٔ م خندا خوښه ده
راشه رانزدې شه ددې زړهٔ م وفا خوښه ده

مه ازاروَه دلبره! مینه م ریښتونې ده
مه کووه ظلمونه م دمینې دنیا خوښه ده

ستا په مینه سوزمه، زهٔ تول لوګې لوګې شومه
توله مینه، مینه، ځما خپله لیلا خوښه ده

ستا وجود م خوښ دے رانزدے شه مینه مینه شه
زړهٔ دے رانه وړے ستا م نازو ادا خوښه ده

ته ځما وجود ئې ځما روح ئې، م هیرېږې نه
نه م ځې له زړهٔ نه ځما خپله خُوبا خوښه ده

زهٔ هغه سحرؔ یم چه تندی کښې م رڼرا پرته
وخانده لږ ماته ځما ښکلې مسکا خوښه ده

# ..... د بل احساس .....

چاته اوکړم فریادونه

چاته اووائیم حالونه

دے

دنیاکښې هیڅوک نشته

چه

فریاد ته مِ غوږ کیږدی

هیڅوک نه آوری فریادونه

چه راوسپړم

حالونه

هر سړے په هوا سور دے

څوک دچا پرواهم نه کړی

تول دنفس په کُوخو سردی

خوک دبل احساس

هم نهٔ کړی

چه انسان دے

خونره لویه الميه ده

که پوهېږے

پښیمانه به په ځان شے

خوارهٔ تلی دی له خلقو

هسے نوم باندی

نسان دے

هر سړے

لاخنگه؟ څنگه؟؟؟

# غزل

ستا ورے ورے خبرے ستا خوارہ خوارہ کتل
ستا خوږے خوږے خبرے بنکلے بنکلے خندیدل

ستا په زړهٔ دننه مینه، مخامخ دے شرمیدل
مینه مینه دلربا وے ستا انداز کښنے مالیدل

تهٔ مجبوره محبوبا وے تهٔ وفا، وفا، وفا وے
مابه بنهٔ محسوسول ، ستا په زړهٔ چه تیریدل

څه ګیلے وے ستا دمینے او څهٔ سختے دَ هجران
تابه حال وئیلے نشو به دے زړهٔ کښنے پټ ژړل

تهٔ ځما وے او زهٔ ستا خو د یوبل نه جُدا
ستا خوارهٔ خوارهٔ کتل مِ به چرته هیریدل

ستا په زړهٔ کښنے ارزوګان، ستا په زړهٔ کښنے ارمانونه
پوره نهٔ شو حسرتونه چه به تاځنے غوښتل

ارمانی م د وصال ئے لا نیمګړے ئے تر اوسه
ستا په شانے محبوبا سحر څوک اونه موندل

کله نه کله

م نازک احساس

چه اولتوی

دژوندون تیر وختونه

راته رایاد ے شی

دغم خبرے

بیازهٔ سوداکوم

فکرونه کوم

لمحه لمحه ځما دَ وړاندے

گرځی

تیرو وختونو پسے

زړهٔ م ژاړی

ځنے خبرے ځما نه هیریږی

چه کله کله ځما روح خوږوی

چه کله کله ځما زړهٔ ژړوی

# ☆ ...... دلحد آواز ...... ☆

زۀ یو تُور ګړنګ یَمه زۀ ډک له بناماړانو یم
زۀ تُوره تیاره یَمه زۀ ډک له بلاګانو یم

ما کښې خندا نشته دے د غم توره تیاره یَمه
زۀ یو خوشې کُور یَمه زۀ ډک له ژړاګانو یم

زۀ یم خاورے خاورے، څۀ بالښت او بستر نۀ لرم
تور څما محل دے او زۀ ډک دکانړو کانړو یم

دلته چه څوک راشی چرے مانه بیرته تلے نشی
ډیر بے وسه اوسی زۀ یو کور دغریبانو یم

دلته خاموشی ده ځان ځانی ده یو سکوت دے
خوشې بیابان یَمه زۀ ډک له ګیاګانو یم

# بیا خبر له هم رانغلے

داتۀ څنګه محبوبا وے بیا خبرله هم رانغلے
جوړ دیره بے وفا وے بیا خبرله هم رانغلے

طبیبان خو داسے نه کا، کله کله خبر اخلی
دا څنګه مسیحا وے بیا خبرله هم رانغلے

تا وعدے دمینے کړلے بیادے پریښنودمه داسے
دا تۀ څنګه دلربا وے بیا خبرله رانغلے

م زړګی ته رانزدے وے م په تن کښنے اوسیدلے
تۀ څما دزړۀ اشنا وے بیا خبرله هم رانغلے

تا م ورانه کړله خونه لابے کوره بے ګودره
تۀ م ژوند ته م دنیا وے بیا خبر له هم رانغلے

لیونے یمه مجنون یم زهٔ په طمعو ستړے ستړے
تهٔ ځما خوږه لیلا وے بیا خبرله هم رانغلے

امیدونه مِ دروغ شو زندګی توله نیمګړے
تهٔ ځما ښکلے شها وے بیا خبرله هم رانغلے

لوئے لوئے شوګیرے دی تکے تورے تورے شپے دی
ددے تورو شپو صبا وے بیا خبرله هم رانغلے

څهٔ ظلمونه دَ دنیا وو څهٔ جانان کښنے وفا نه وه
ځما نه وے د بل چا وے بیا خبر له رانغلے

ستا هجران دے ستا فراق دے سحرؔ غلے غلے کیږی
بے وفا وے ، بے وفا وے ، بیا خبر له هم رانغلے

## ☆ ...... غزل ...... ☆

ځمه انتظار کښېنے، اے ځما محبوبا راشه
چل ول کښېنے عمر تیر شو بے وفا دلربا راشه

ستا ښکلے ښکلے حسن، ستا یا دونه م په زړهٔ دی
خیالونو کښېنے مِ اوسے اے ځما هوشربا راشه

ښکاریږی ستا نه هیر یم چه تهٔ نهٔ راځے دلبرے
رایاد کړه تیر وختونه، مرحبا مرحبا راشه

هیریږی رانه، نه، م په زړګی دننه اوسے
یو تهٔ م دلربا ئے، دلربا دلربا راشه

تهٔ ځما د ژوند بقا ئے، تهٔ ځما د ژوند سبا ئے
پریشان د تا سحرؔ دے په مسکا او خندا راشه

# ...... قطعه ......

چه په ژوند مِ تپوس نه کا په مرګی چه هڅو رانشے
دا څنګه دنیا ده ، او دا څنګه دستورونه دی

ستا راتلل جوړ ګران دی څما ژوند څه معنی نهٔ لری
دا څنګه جانان دے ،او دا څنګه ئے رسمونه دی

# ...... ☆ خوند به چاکښنے نشته ☆ ......

خوند په چا کښنے نشته دهرچا نه خوند وتلے دے
هر سړے پیکه دے ګوَرے چا ترِ خوند لر کړے دے

مینه مینه نشته فریبونه، مطلبونه دی
قدر د پیسے دے احترام د انسان تلے دی

نشته هیڅ خوارهٔ په چا کښے هر سړے پیکه پیکه
سنهٔ ریښتونے خلق دے دنیا نهٔ فنا شوے دے

څنګه یې خوندئ باندے عالمه علے نیر ...مه
زه خما حوریری څکه هر حال م نیکلے دے

خانے د ګسے نشته زړهٔ دچا نه ګیله اوکړمه
څکه نے زهٔ وانیم د هرچا حال م لیکلے دے

## ☆ ...... خپل ارمانونه ...... ☆

کوم امیدونه حسرتونه چه م زړهٔ کښې پراتهٔ
هغه مِ تول دخپل زړګی ویستی دی

زهٔ د بهار نه د یوګل طمع هم نه لرمه
ستا نه سپرلیه سرهٔ ګلونه دلته چاغوښتی دی

څما د ژوند دپاره ډیر دی څما خپل غمونه
څما ساده زړګیه په تاڅه شوی دی

ما ستا نه مینه به غوښتله ، نه سُور اُور د هجر
تا خو ظلمونه اے دلبره! په ما ښهٔ کړی دی

چه به خوږے خوږے نغمے ترِ نه پخپله وتے
څما د زړهٔ هغه تارونه خدائیګو تول سوی دی

ئے له اغازه له انجامه ښهٔ خبردے سحرؔ
خپل ارمانونه م له زړهٔ نه اوس جُدا ایښی دی

## په خطا کېښې

څواني م لاړه مينه لاړه په سبا سبا کېښې
ژوند م يو درد دے رانه تير شو په ژړا ژړا کېښې

څما شباب وو ليونے وسه ناپوهه غوندے
ښکلے وختونه رانه تير شو په خندا خندا کېښې

تش ارزوګان دی پښيمانی ده ستومانی ده ژوند کېښې
زهٔ پناه غواړمه له خدايه په دُعا دُعا کېښې

مينه مِ زړهٔ نه تير وختونو سره لړے تلے
څواني د غمه سره تلے په بيګاه بيګاه کېښې

هسے خيالونه دی دردونه دی د ژوند معنیٰ کېښې
دا زمانے سرے لوتی تشه وفا وفا کېښې

زهٔ سحرؔ مينه به بيا نهٔ کړمه خوبانو سره
هسے لوګے شومه ايرے شومه خطا خطا کېښې

# ☆ ...... کله ښکلې کله ښکلې ...... ☆

دا ښکلې م دلدارئې کله ښکلې، کله ښکلې
دا ښکلې ځما يارئې کله ښکلې، کله ښکلې

وينې وينې م زړګې دې نۀ زۀ مرمه نه رغيږم
دا څۀ رنګه غمخوار ئې، کله ښکلې، کله ښکلې

تا چه مينه ځما کړله ځما مينه پښتنه ده
پوهه نشوم وفادار ئې کله ښکلې، کله ښکلې

نه دې ګل نه دې خوشبو شته دبلبل غريب دپاره
عجيبه غوندې بهار ئې کله ښکلې، کله ښکلې

يولحظه کښېنې تندې ګونجې بيا لحظه کښېنې خومره خوږئې
کله کم کله بيسيار ئې کله ښکلې، کله ښکلې

تۀ خُوبا ئې ، دلربا ئې ، بلغمی مزاج بدل کا
تۀ هروختې ناقلار ئې کله ښکلې ، کله ښکلې

کله غم کله ژړا وی ، مينه رنځ وی نه بنۀ کيږی
اے سحرؔ ! جوړ بيمار ئې کله ښکلې ، کله ښکلې

# ساقی!

پیالئ که راله نه راکئ شراب خو راله راکه
ساقی د میکدے نه یو کوټ آب خو راله راکه

ډیر تږے د مودو یم ما تهٔ مهٔ شړه له دره
خمار که راله نه راکئ تش خواب خو راله راکه

چه تنده مِ سړه شی څه نشه نشه دے نه یم
دےٖ بنکلے میکدے نه څهٔ یو باب خو راله راکه

عادی ئیمه د مئیو ، په جامونو شراب څبنمه
چه نه ئے راکئ ساقی نوبیا جواب خو راله راکه

کاسے دے تولے تشے دی پیالی دے تولے تشے
گناه څما دمینے لږ عذاب خو راله راکه

زهٔ څم به میخانے ته ماتهٔ مه وایه ناصحه
ساقی سحرؔ نشه که لږ شراب خو راله راکه

# مینه م لاړه !

ینه م لاړه ژوندون لاړ د غمونو سره
ختونه تیر شولو ، ناوخته، امیدونو سره

حسرتونه تلوسے م تولے خاورے ایرے
خت م تیریږی اے دلبره ستا یادونو سره

د ځوانئ ، د رمیتوب وختونه نۀ هیریږی
محه لمحه راته یادیږی ډیر دردونو سره

ینه م لاړه ځوانی لاړه روح تنها پاتے شو
خندا نشته دے زړګی کښے د دردونو سره

کلے ژوندون ښکلے صنم ماله غمونه راکړۀ
حر څه چرته ژړ ـ ، ارمانونو سره

## ګناه خو نه ده ......

که د جانان لړ حواله راشي څۀ ګناه خو نۀ
په سکلي خُله که په خندا شي څه ګناه خو نۀ

له ډيره غمه ډيره درده م رږګي سوې
نه ګله که په مسکا شي څۀ ګناه خونۀ

ژندګي لاړه، عمر لاړه، لا تنها يمه
که څما جان چرې څما شي څۀ ګناه خونۀ

څما د لرې وطن يار څما نه لرې اوسي
که م څپل يار کلي ته راشي څۀ ګناه خونۀ

دابدې ورځې جوړې ليک دی تش څما په قسمت
سکلي جانان که م اشنا شي څۀ ګناه خو نۀ

کله صبا، کله ماښام وی، په ماتورې تين
دا تُورې شپې که م صبا شي څۀ ګناه خو نۀ

خدائيګو چه تنګ يم نفرتونو حسرتونو نه
که مينه مينه م خوبا شي څۀ ګناه خونۀ

نۀ دلربا شته، نۀ وفا شته ، دې دنيا کښې
څما جانان که با وفُا شي څۀ ګناه خو نۀ

## په خنجر وهلے تا

ښکلے ښکلے محبوبا، ښکلے ښکلے دلربا
خوږه حُسن دے دَ تا اے د ګل غوندے رِعنا

ښکلے مخ رڼړا رڼړا لکه ستورے دصبا
تهٔ په زړهٔ کښے م اوسیږے اے ځما د زړهٔ شها

ستا خوږے خوږے خبرے، ستا یادونه ماسره
لا په طمع ئمه ستا، راشه راشه اے خُوبا

مینه مینه دے مُسکا دَ تا سترګے دلربا
نه ښهٔ کیږم محبوبا ! په خنجر وهلے تا

ستا ښائسته ناز و ادا دا ستا مینه م سودا
په خیالونو کښے م اوسے ته ځما د زړهٔ دنیا

ستا معصوم زړګی نه ځار جوړے تول وفا وفا
هیر به نشے ته له ما په ما ګران ئے محبوبا

ئمه توله مینه مینه، لږ خپل حُسن ماله را
د سحرؔ نشته خوبا، ته ځما ئے او زهٔ ستا

## سَر به چاته څۀ تیتۀ کړم

ښکلي که خوبا دي خو خُوبا نه دیدن نۀ غواړم
حُسن که مِ خوبښ دي خو له چا نه حُسن نۀ غواړم

ښکلي ښکلي نرمې نرمې دی د یار خوږې خبرې مِ
مینه پُښتنه ده ، زۀ له یاره گُفتن نۀ غواړم

لاس زۀ چاته نۀ نیسم، سر به چاته څۀ تیتۀ کړم
هسکه دا غړۍ به وی له چانه لمن نۀ غواړم

زړۀ که هر څۀ غواړی نو بس غواړی لیونے به وی
خپل عزت لرم به ، که لیلیٰ یم، مجنون نۀ غواړم

وی ریگستانونه دي ،وی خاورې ایرې دي وی
وی ښائسته باغونه دي، د چا نه گلشن نۀ غواړم

زۀ سحرؔ پریشان دي یم زۀ سحرؔ نالاں دي یم
څه؟ که زۀ غریب یم ، خو له چا زۀ اِسهتان نۀ غواړم

## ...... اے دجانان یادونو ! ......

ستا لیونی یادونه، نه م پرېږدی

ځما دروح سوی تارونه چیړی

خو ځما زړهٔ ګلے

ایرے ایرے دے

دے ستا په مینه کښې

پخوا سوے دے

داستا یادونه

کله کله راشی

راته په یاد کړی

پخوانی یادونه

خو زړهٔ کښې

مینه چیرته

داستا دحُسن دفراق



اُورونو ډېر سوے دے

یادونو!

راولئی دلبر درسره

په تش یادونو به زۀ

څۀ اوکړمۀ

ګنی ما پرېږدئ

لیونی یادونو!

پخپله مخه چه ځم

په مینه مینه کېښے

زۀ ډېر ستړے شوم

پرېږدئ آرام چه اوکړم

یادونو ولے چیړئ

ځما دا ستړے زړګے

مِ دَ زړګی تارونه شرنګ نه کوی

تول دی شلیدلی پراته

اے دجانان یادونو!

مه م چیړئ

څما د روح نه هیڅ هم غږ نه خیژی

چرته ژوندی روح نه

نغمے جوړے کړئ

زما دروح تارونه تول سوے دی

اے لیونی یادونو!

زۀ تول ایرے ایرے یم

اے دجانان یادونو

مه م چیړئ

په تش یادونو به زۀ څۀ اوکړمه

## ﴾ ...... ☆ مینه او کرکه ☆ ...... ﴿

زړګے مِ لیونے دے دهرچا نه مینه غواړی
ناپوهه دے نادان دے بے وفا پسے دے ژاړی

دنیا د نفرت ډکه، او تهٔ مینه مینه وائے
دا کرکے حسدونه دے په مینه کښنے رانغاړی

# ☆ ...... ستا په غمْ کښې ...... ☆

تهٔ خو جُدا شوے محبوبا، خو ليونى زړګى ته ډير يادېږے
څما د ډيرو مودو ياره ، پخوانى زړګى ته ډير يادېږے

زهٔ ستا په غم کښې ستا فکرونو کښې به اوسم مدام
لاړے فنا شوے بے وفا خو جُنونى زړګى ته ډير يادېږے

دا ستا دمينے ، دهجران ، قيصئ به يادے لرم
په کربليچونو د ژوندون کښې صحرانى زړګى ته ډير يادېږے

په تصّور او په خيالونو، په خوبونو کښې م ته ئے ګُلے
جانانه ستا پسے پريشانه، جانانى زړګى ته ډير يادېږے

خير دے بيلتون دے وى هجران دے وى غمونه بنهٔ دى
سحرؔ خو توله مينه مينه، يارانى زړګى ته ډير يادېږے

## ...... په لوئے مکان کښې ......

ماهم ډیر عمر تیر کړے
ددنیا په لوئے مکان کښې
دغه ورځے دغه شپے وے
چه په
ماهم تیرے شوی
دغه زمکه
دا
آسمان وو
ما هم ډیرے
مزے کړی
ددنیا عجیبه بنار کښې
ماوے
زهٔ به دلته یَمه
په چل ول کښې عمر تیر شو
مرګی
یورومه خپل کورته

لته خوشے بیابان دے

لته کانړی کانړی کانړی

لته خاورے خاورے خاورے

زۀ هم خاورے خاورے شومه

اوس داپته چاته نشته

چه څوک وو په دے

جهان کښنے

اوس مِ خاورو کښنے ژوندون دے

کوَرے کله به پاسیږم

زۀ

به دیر عمر اودۀ یم

پته نه لګی

دَ بیا---------

کوَرے وړاندے به څۀ کیږی

اوس زۀ تورے خاورے شوے

دلته خاورے خاورے

پروت یم

دا
يو لار ده ژوندانه ته
داشهکار دخدائ
دنيا لويه خداى ده
دنيا پټ غوندې يو راز
يو اوږده دغم قيصئ
يو نيمګړې شان ارمان
دابنائيست دهغه ذات
دا يو لوئې غوندې کتاب
زمانې ئې
پاڼې پاڼې
دا رنګونه دى خوندونه
څۀ [illegible]ې او څۀ غمونه
کله کله دا يو شُور
دابنائيسته غوندې يو باغ
کړى تالا به ئې ماليار
داڅۀ تلل دى
څۀ راتلل
دل کوى داانسانان
څۀ ده؟ څۀ ده؟ دنيا څۀ ده؟
نۀ پوهيږمه چه څۀ ده

# خوند په دے محفل کښنے دے

ومره خلق لاړ
و یو خوند
دے محفل کښنے دے
یخ پته ئے نه لګی
وم خوا ته چه تلی دی
دنیا وفا نه کړی
دنیا بے میڼے ده
ل مرور تلی دی
ا هم دلته شرنګ دے جوړ
ا هم دلته رنګ دے جوړ
خۀ په خپل تال روان
ی دے محفل نه چه

خلقو نه هیر شوی دی

څوک دچا یاد نهٔ کوی

ډیر خلق تیر شوی دی

دې محفل هیر کړی دی

هیڅ نیمګړې نه ده دا

شرنګ د ورکیدو دے دا

رنګ د ختمیدو دے دا

خوند به شی پیکه پیکه

خُور به شی هم دا محفل

هر څهٔ به ویران ویران

هرڅهٔ به حیران حیران

حال ددے محفل [illegible]

بیا هم دلته شرنګ دے جوړ

## ...... نقشونه به فنا شي ......

دا ـوئے لوئے لارے دا لوئے لوئے سفرونه به فنا شي
ستوماته ، ستړے، ستړے ، کاروانونه به فنا شي

دردونه به فنا شي ، دا غمونه به فنا شي
دا هر څۀ به فنا شي ، دا خوبونه به فنا شي

منزل دنته کښې نشته ، مزلونه دي مزلے
دا نخښې به فنا شي، دا ګردونه به فنا شي

که لرے که نږدے وی که څوک ځي او که څوک نه ځي
محلونه به فنا شي ، منزلونه به فنا شي

قا دهيڅ هم نشته، زۀ عدم او نيست له ځمه
دا . . . ے به فنا شي ، آسمانونه به فنا شي

لیدلی ما په خاورو کښېنے، خاموشه غلے غلے
راغلے که راځی به، ټول نقشونه به فنا شی

د شپو نه به رنګ لاړ شی بیا صبا به داسے نه وی
امیدونه به فنا شی، ارمانونه به فنا شی

سحرؔ به هم فنا شی ، دا بیګا به هم فنا شی
دا هر څۀ به فنا شی، ټول وختونه به فنا شی

که ناست دی که په تګ دی خو آخر کښېنے سترے سترے
دا لارے به فنا شی ، پړاؤنه به فنا شی

سحرؔ به هم فنا شی، احساسونه به فنا شی
دا لویه میکده ، او دا جامونه به فنا شی

## ☆......څۀ معنیٰ څما......☆

پوهه نشومه چه څۀ دی

او چه

څۀ له زۀ راغلے

دردونه دی غمونه

د درُوغو امیدونه

ستومانه ستړے ستړے

دا ژوندون دے که غمونه

چه

په ژوند کښې ورداخلم شوم

نو

غمونه راچاپیر شو

هره ورځ به بل بل حال وی

سرګردانه

زۀ ستومانه دے ژوندون کړم

څۀ غمونه د دنیا

څۀ غمونه دخپل ځان

دلته درد

دبل ژوندون هم

دلته غم د دوزخونو

دلته غم دحسابونو

ددے عمر په گردش کښے

فلسفے ډیرے بے شماره

زۀ تنها تنها ورځمه

دیو تور محل په لوری

هلته تُور غوندے

بستردے

آخری دغم یو کُور دے

زۀ تنها تنها به اوسم

تش غمونه دی غمونه

خدایه څه ځما مطلب دے

خدایه څه ځما معنی ده

## هرڅۀ به تالا والا

تیرے به شی دا ورځے

هیرے به شی دا ورځے

دا وختونه تیر به شی

دا وارونه تیر به شی

هر څۀ به تالا والا

داهر څۀ به پاتے شی

دا خوبونه ورک به سی

تۀ راتلۀ نه

بیا نه وی

داهر څۀ به داسے وی

مونږ به دلته نه یو بیا

دا وختونه لاړ به شی

دا وارونه تیر به شی

ورک به دے فضا کښے شو

پته به هیڅ نه لګی

دامستی به ختمه شی
داناز ونه ورک به شی
خاورو کښې به خاورې شو
چا یاد کښې به نه راځو
هسې به
دګل غوندې
پاڼې پاڼې اوړو
ورک له دې دنیا به شو
پته به مونه لګی
خاورو کښې به شپې ورځې
خاورو کښې مزل به کړو
خاورو کښې منزل نشته
هر څهٔ به تالا والا
هیڅ پته به نهٔ لګی
کوم ځائې کښې به ژوند کووو

## ☆......د افغانیانو ترانه......☆

پاک وطن افغان دے او پښتو زمونږه ژبه ده
اوسو مونږ په شارو کښې دا شارے زمونږ برخه ده

مونږه عرسنی یو کانړو لوتو کښې ژوندون کاوو
ننګ زمونږ ایمان دے ننګ غیرت د پښتون نخښنه ده

څۀ شو که شلېدلي ګریوان د پښتون خیرے دے
زړۀ کښې مینه مینه، میلمستیا د پښتون دغه ده

شیرشاه که احمد شاه دے که بادشاه تغلق شاه دے
تاریخ ته هیروے نشی قصه د ستړو هغه ده

عبر که په دے زمکه قدم ایښے مونږ شړلے دے
ځان به تر قربان کړو دا د پلار نیکه موټمه ده

دا هغه ملت دے چه تاریخ ته هیروے نشی
مونږه پښتانۀ یو پښتونخواه زمونږه خوښنه ده

چا چه په کړو سترګو افغان قوم نه کتلی دی
مونږه زغملی نه دی زمونږه ختمه ده

خپل وطن مو ګور دے او دا خپل وطن مو ګور دے
ټوله پښتونخواه زمونږ، که لره ده که بره ده

راشی که طوفان د پښتونخواه نه مونږ وړے نشی
مونږه افغانان یو په دے ملک مو پنجه ښخه ده

دلته تورزنان دی دا بچی د باتورانو دی
زمری دلته اوسیږی دا د ښو میړنو زمکه ده

پښتو زمونږه شان دے اوپښتو زمونږ ایمان دے
مونږه پښتانهٔ یو، په پښتو مو شمله غټه ده

# یوه بوډهۍ

یو ورځ معصومه وم
دمور نیا ز بینه وم
دپلار یو ګل ومه
دمور قرار ومه
ینه مینه مینه وه
ه ډګل غوټۍ ومه
یې ورځې په سې

شو نو بو کښې
ه وم ناحېره
چه ژوندون څهٔ دے؟
ورو م ډدم
ځوانۍ ته ښکته کړو
لته یو بهار وو
هٔ یو حوره دجنت ومه
ښکلې ښاپیرۍ ومه
هٔ ښکلا ښکلا ومه

مینه مینه مینه وم

شپې ورځې رنګینې وې

ماوې تل سپرلې به وی

چل ول کښېنې زهٔ مورشومه

تل هرځهٔ ځما به وو

رهٔ یوه ملکه ومه

مانه بادشاهی کړله

شپې ورځې روانې وې

نهٔ پوهیدم خان باندې

ماچه ځان ته اوکتل

مخ ځما راګونجې وو

تور دسترګو ورک شولو

تور زلفان م سپین شولو

حلے نه م مسکا ورکا

سر نه م مسنی ورک

زړهٔ نه م مسنی ورک

زړهٔ نه مینه لاړله

نګ کسے هغه شان نه وو

خرانی ځما نه لاړله

مینه مینه مینه وم
شپې ورځې رنګینې وې
ماوې تل سپرلي به وي
چل ول کښې زهٔ مورشومه
ټول هرڅهٔ څما به وو
زهٔ یوه ملکه ومه
مانه بادشاهي کړنه
شپې ورځې روانې وې
نهٔ پوهیدم ځان باندې
ماچه ځان ته اوکتل
مخ څما راګونجې وو
نور دسترګو ورک شولو
تور زلفان م سپین شولو
حسن نه م مسکا ورک
سر نه م مستي ورک
زړهٔ نه م مستي ورک
زړهٔ نه مینه لاړله
ننګ کیسې هغه شان نه وو
خزانې څما نه لاړنه

م وجود کښنے نه وو بیا
از غرور هم ختم شو
وله ښنکلا ورکه شوه
ور نغرے وران شولو
ل ته لاس نیولے شوم
ژوند ملګرے لاړلو
ے مسافر شولو
یا په بیرته نه راځی
و خوا زهٔ تنها شومه،
وک چاله لاس نه ورکئی
زهٔ ارمان ارمان شومه
ل ته لاس نیولے شوم
ر څهٔ م تالا والا
اخنګه ژوندون م وو
مر م تول تیر شولو باغ د بهار ختم شو
زهٔ یوه بوډهی شومه، خوب د ژوندم تیر شولو

# ﴿سُوزو ساز﴾

هغه رنګ وشرنګ م نشته هغه سوز وساز م نشته
هغه خوند مزه م تلے هغه نازو نیاز م نشته

لکه بل چراغ چه مړ شی هسے تیز طوفان وهلے
یو بحڅړے یم بحڅړے، هغه نور و ناز م نشته

چاته اوواثیم حالونه، زړهٔ م ډک دے له رازونو
چاته ورکړمه زهٔ مینه هیڅوک سم همرازم نشته

ورځ چه ځی نو زهٔ ډلیږم، زهٔ دنیست په لوری ځمه
مړاوے کیږم مړاوے کیږم هغه تور و تاز م نشته

ما قیصے د مینے راوړے د ازله په زړګی کښے
توله مینه مینه مینه، زهٔ محمود، آیاز مِ نشته

اوس م بنګلے خوشبو نشته ما سحرؔ کښے نغمے نشته
ډوبوی دا زمانے م، هیڅ څهٔ شرنګ آواز مِ نشته

# اے دلبره ستا یادونو باندے!

اے دلبره ستا یادونو باندی شپے ورځے تیریږی
اے دلبره ستا غمونو باندے شپے ورځے تیریږی
تهٔ چه لاړے نو بس لاړے زهٔ تنها یمه تنها یم
اے دلبره فریادونو باندے شپے ورځے تیریږی
داسے لګی چه څه ورک دی له زړګی نه
اے دلبره ستا دردونو باندی شپے ورځے تیریږی
تهٔ څما د روح ملګرے، تهٔ څما د زړهٔ نغمه ئے
اے دلبره ستا خیالونو باندے شپے ورځے تیریږی
زهٔ پریشانه ، پریشانه، زهٔ نیمګړے یم نیمګړے
اے دلبره! ارمانونو باندے شپے ورځے تیریږی
تهٔ جدا ئے زهٔ جدا یم، رانه تلے ئے دلبره
اے دلبره! امیدونو باندے شپے ورځے تیریږی
ستا یادونه ما سره دی، ستا دردونه ماسره دی
اے دلبره ! ستا غمونو باندے شپے ورځے تیریږی

# دغریب فریاد

دا څۀ راسره اوشو غریبي بده بلا ده
دا څۀ راسره کیږی همه ژوند ځما سودا ده
وارونه م خطا شو تیر، بیر شومه په ژوند کښې
قسمته څۀ دې اوکړل دا سپیرۀ برخه ځما ده
غریب یمه غریب یم، بوډا شوے یم بې وخته
نمګړے ناپوره م د زړۀ هره تمنا ده
خوارئ دے غریبئ ، ځما ځوانی تالا والا کړه
دا څۀ رنګه ژوندون دے او دا څۀ رنګه دنیا ده
سَروهلے بَروهلے در په در تکرے خورمه
دردیږمه ، ژړیږم، په خپل ځان ځما ژړا ده
په ما کښې څۀ چل نشته دا تول چل دے په دنیا کښې
غریب یمه دا ځکه د هرچا په ما خندا ده
زړۀ ستړے دے دنیا نه زۀ راغلے له ازل له
زړۀ چاودے یمه ډیر او زړۀ چاودے م فنا ده

# ولے ؟ولے ؟ دومره فرق!

ار شمه اے خدايه

تا دلويو قدرتونو نه

ومره لوئے

ام دِ دے

ل رنګه

کونه دی

وک مستی لکه طوفان کړی

وک عاجز

ی لکه خاورے

وانسان دے

وه لاره

لے ؟ولے ؟

دومره فرق

خوک له ډيره زياته نازه

که لت نشه نشه وی

خوک بے حوده له ژوندونه

خوک بے خوده بے بسئ وی

دچا

ژوند مړه مړه وي

دچاژوند همه غمونه

چانه ورکړے دبدے

چے

تنګ په چپل ژوند کړے

څوک سپوږمۍ دڅوارلسمے، دسروګلو نه ښائسته وي

دچا

مخ دکتو نه وي

څوک غنی وي

څوک سخي وي

بل

ګدا سپیره سپیرۀ

څوک خوبونه په بخمل کړي

چا دپاره

تکړه ځائے نه وي آرام له

دچا رزق وي بیسیاره

څوک تکړے

خوارۍ کوڅوکسے

څوک باد ... د ... نو کړې
څوک نچ... ... ...
سوالګر کړے

يوانسان دے
دوسره فرق
لويه خدايه!
جوړ په دے کښے هم څه چل دے
خوبيا هم
انسان خوشحاله
خدايه!
داهم ستا خدائی ده
لويه خدايه!
لويه خدايه!



# ☆هیڅ هم نهٔ ده زندګی☆

نهٔ ده، نهٔ ده دا دنیا ، هیڅ هم نهٔ ده زندګي
مینه نه کړی دا له چا هیڅ هم نهٔ ده زندګی
دا تیریږی هم پخپله، تیروی مونږ له دنیا
دا جفا جفا جفا، هیڅ هم نهٔ ده زندګی
چا موندلی څهٔ [illegible] ژوند ، ما موندلی څهٔ په ژوند
دروغ نه دی دا [illegible]ستا، هیڅ هم نهٔ ده زندګی
ورشه اوګوره تهٔ [illegible]، دی ذرے ذرے عالم
دغه حال څما اوستا، هیڅ هم نهٔ ده زندګی
څومره ورک دی په دنیا، پته نهٔ لګی دچا
چا موندلے ده بقا، هیڅ هم نهٔ ده زندګی
ژوند ګرداب دے تاوول کا، ژوند ګرداب دے ډوبول کا
هر څهٔ دی فنا، فنا، هیڅ هم نهٔ ده زندګی
مینه نه کوی له چا، بے وفا ده ، بے وفا
څهٔ خندا او څهٔ ژړا هیڅ هم نهٔ ده زندګی
که سحرَ دے که بیګاه هیڅ هم نشته په دنیا
دا یو تیز بادِصبا، هیڅ هم نهٔ ده زندګی



## ☆ اوچت نه ئے ☆

په سرکښنے دے غرور دے
په زړهٔ کښنے دے تیرے دی
په ژبه دے ازغی دی
په نیت دِ پوهه نشوم
خاطر وترس دِ نشته
بے مینے دِ زړګے دے
بنامار ددے دنیائے
درنګ وشرنګ ملګرے
حقیقت نه بے خبره
دځان نه بے خبره
چه
کوم ځائے نه راغلے
او په کوم لوری به دروے
یخپل تال
کښنے روان ئے
دا بل
درته هیڅ بنکاری

غریب پوزے خنداکړے
خوارۀ درپکښے نشته
دا
خنګه د زړګے دے
په خیال
اوچت روان ئے
اوچت نه ئے!
د دنیا پسے سوچونه
هرځۀ درنه هیر شوی
تُور ویښته دِ سپین شُو
تۀ په ښۀ اوبد
پوه نشوے
مطلب دژوند دِ څۀ دے
تۀ په دے باندے
سوچ اوکړه



# زۀ وے او جانان وے

چه لرے م دنیا وے چرته ځان له اوسیدلے
چه سم تَنے تنها وے خوا له هیڅوک نه راتللے

خیالونو د جانان کښې م خپل ځان مشغولولے
یادونه راسره وے خپل جانان م یادولے

خزان چرته کښې نه وے چه زۀ نۀ وے رژیدے
بهار دے وے بهار ، چه بلبلان تل چغیدلے

چه روح او زړۀ مِ دواړو د جانان خبرے کړے
داغم ددنیا نۀ وے ، د یار غم کښې ما ژړے

حسد او کینه نۀ وے ما څه نۀ محسوسولے
چه مینه مینه مینه وے، ما مینه تل کولے

چه ځان له چرته ناست وے زۀ هیچا هم نۀ لیدلے
چه زۀ وے او جانان وے لوګیدلے بلیدلے



# اے عشقه!

ما داسے ځائے ته بوځه چه هیڅوک هلته کښنے نۀ وی
ما هاغه ځائے ته بوځه چه لیده وی نۀ کاتۀ وی
گناه چه ورکښنے نۀ وی نفرتونه پکښنے نۀ وی
خوږے خوږے خبرے ، ژوندون ټول مزه مزه وی
چه زړۀ کښنے خیرے نۀ وی په تندی کښنے گونجے نۀ وی
نیتونه چه صفا وی او هر څۀ خوارۀ خوارۀ وی
ما داسے ځائے ته بوځه، چه خبر نۀ یم له بدو
تراخۀ هلته کښنے نۀ وی چه خوارۀ خوارۀ ټول ملۀ وی
غرض، طمع چه نۀ وی، نۀ فریب او مقصدونه
رښتیا وی دروغ نۀ وی ټول په مینه کښنے نشه وی
اے عشقه! درسره یم مایو داسے ځائے ته بوځه
چه خلوص وی ، مینه مینه، نور هرڅۀ هلته کښنے نۀ وی
چه غم غصه هم نۀ وے زۀ په څۀ نۀ خوږیدلے
ځما د زړگی مینه، او جانان ځما سره وی

## ☆ تورو سترګو دجانان ☆

ماوے مینه به زۀ نۀ کرم

څما مینه

نۀ وی اُوروی

څما مینه سوزول کړی

بیا

خوږیږمه، کړیږم

تورو سترګو دجانان

څما

مینه بیا خُمار کړه

لا زخمونه ووزړګی کښې

تورو سترګو دجانان

څما زړۀ یوړو له ما نه

دوباره ئے زۀ رنځور کړم

اوس سوزیږمه دردیږم

لوګے کیږم، لوګے کیږم

بیا

څما عقل خطا کړو

بنګلے بنګلے ئے چشمان

بنګلے مخ م دجانان؟

نورو سترګو کښے ئے مینه

ے په سترګو کښے جهان

ارمانونه م راویښ شو

خوموندل ئے خومره ګران

خو، بس------

داسے به ګرزیږم

تش دردونه به زغممه

فریادونه به کومه

نه خپه ے حوبرویان

هره وږمځ به نوې نوې

افسانې په زړهٔ جوړېږي

تورې سترګې تور بانړهٔ

څما زړهٔ ئې شو مېزبان

ګورې ګورې که زهٔ بنه شم

توربانړهٔ م په زړهٔ بنخ شو

زهٔ چه ګورم نشه کېږم

زهٔ چه ګورم لمبه کېږم

په خنجر وهلې يار

تورې سترګې مِ قاتلې

هسې نه ايرې ايرې شم

هسې نه

ايرې ايرې شم

# تورې سترګې

څما مینه لیونۍ ده د یار سترګو کښې اوسیږي
څما زړهٔ څومره نازک دے ، په لیدو د یار خوږیږي
کله سترګو کښې خوارهٔ وی کله سترګو کښې تراخهٔ وی
تورې سترګې د جانان م، څما مینه په دردیږي
د یار حُسن لیونے دے څما مینه لیونۍ ده
زړهٔ م یار پسې دردیږي سترګې یار پسې ژړیږي
نورانی د جانان سترګې، خونړۍ م دَ یار سترګې
تاؤ د مینې څما دومره، روح او تن م پرِ سوزیږي
د یار سترګې دلربا دی ، د یار سترګې هُوشربا دی
زړهٔ دردیږي ، روح ژړیږي د یار مینه کښې خوږیږي
ـورې سترګې د جانان، تور بانړهٔ د دلربا م
ما خُمار کړی، ما نشه کړی څما زړهٔ لیونے کیږي
ـ مړ شمه له غمه، څما مینه لیونۍ ده
ـ جانان م بے وفا دے هیڅ په مینه نهٔ پوهیږي

# دا پریشان پریشان

نَشه نَشه چه گرځم دا خُمار خُمار چه گرځم
پریشان پریشان چه یمه، دا جانان زهٔ یادومه

سور کښنے م سلګرے ، سوزوسازم د ژوندون دے
ت پټ ژاړمه ژړیږم، خپل ارمان زهٔ یادومه

سوالګر غونډے چه یمه ، ګداګر غونډے چه یمه
وفا او مینه غواړم شاه خوبان زهٔ یادومه

جُدا جُدا چه یمه، دا تنها تنها چه یمه
دردمند غونډے چه ښنکارم بے پروا ، پروا چه یمه

م زور د ډیرے مینے دا احساس د ډیرے مینے
نوا غونډے چه یمه دا رُسوا رُسوا چه یمه

احساس کښنے ډیره مینه دا م روح کښنے مینه مینه
م سوزوسازو د زړه دے دا زړګی کښنے مینه مینه

م خیالونو کښې جانان دے احساسونو کښې ارمان دے
لټومه زهٔ جانان هر یو شیز کښې مینه مینه

دا چه څان له څان له کېږم داچه غلے غلے کیږم
دا وصال د دلدار غواړم دا وفا د دلدار غواړم

دا پریشان پریشان چه یمه دا مِ غم د خپل جانان دے
دا تنها تنها چه یمه دا وصال زهٔ د یار غواړم

دا چه زهٔ لیونے ښکارم ، ناخبر چه له جهان یم
دا چه څان له دنیاګئ مِ ، ارمانی د خپل جانان یم

دا چه کار م په هیڅ نشته ، دا دنیا راته هیڅ ښکاری
زهٔ امید یم انتظار یم زهٔ ارمان یم زهٔ جانان یم

## ساهٔ سوزوه!

چه مینه نه کړې نو زړګي م هسې مهٔ خوږوه
بيا به درديږم ، چه وفا نه کړې ما مهٔ ژړوه
ځما نازک غوندې زړګې دے د غمونو کوردے
بيا به سوزيږم ، لوګيږمه، ما مهٔ سوزوه
يا مينه مينه شه دلبره! م د ژوند د پاره
يا م مرحم شه د زخمونو يا ما مهٔ دردوه
ځما ساده غوندې مزاج دے بيا به تا يادوم
ځما معصوم معصوم زړګے دے تهٔ ما مهٔ کړوه
بيا سودائی به رانه جوړ شی ، ليونے به شمه
بيا دربه دره به زهٔ ګرزيږمه، ما مهٔ ګرزوه
بيا به دے هير شمه دلبره! ما به نهٔ يادوې
دا دَ سحر دا د صبا ګلونه مهٔ شوکوه

## سوالګرے

زۀ سوالونو له پيدا يم زۀ غمونو له پيدا يم
يو سوالګرے يم سوالګرے تش سوالونو له پيدا يم

ورنے تربے در په در يم، سَر وهلے ، بَروهلے
زۀ نيمګړے يم نيمګړے زۀ دردونو له پيدا يم

زۀ انسان يم بل انسان ته لاس نيولے
دے عيشونو له پيدا دے زۀ فکرونوله پيدا يم

څما زړۀ هم هر څۀ غواړی م زړګے د يوانسان دے
زۀ خو تول ارمان ارمان يم ، ارمانونو له پيد ايم

زۀ رسوا په ژوندانۀ شوم ، زۀ خفه دے خپل نصيب کړم
څوک په ډکه خُله خندا کړی زۀ غمونو له پيدا يم

د نمرئ تکهے د پاره در په در خاورے په سر يم
زۀ رتلو له پيدا يم ، حسرتونه له پيدا يم

چه زۀ نه وے پيدا شوے داسے ژوند نۀ مرګے بنۀ وی
زۀ سوالونو له پيدا يم ، زۀ اهونو له پيدا يم

## ☆ فراق ☆

ستا جدائی ده
ستافراق دے
ستا بیلتون دے
انتظار دے
ستا سودا ده
خوبولے خوبولے
توله دنیا کبنے سے
ستا غم ملگرے
څما
په زړهٔ کبنے تهٔ ئے
هر یو احساس کبنے تهٔ ئے
هره لمحه کبنے تهٔ ئے
زهٔ
توله مینه مینه
اوتهٔ جفا جفائے
اوتهٔ فراق فراق ئے
ګورے



چه مابه یادوې

اوکنه

ګورې ------

چه زړهٔ کښې به دې یم اوکنه

ستا په یادونو

کښې مې زړهٔ ستړې شو

ګورې چه کوم ځائے به ئے

ځما عادت زړګے

خفه خفه دے

ستا د خوږو سترګو

آ -------

مینه غواړی

خیالونه راشی

غلے غلے مې کړی

یادونه راشی

ما اودهٔ غوندے کړی

دا ستا هجران دے

ستا فراق دے ګُله !

ماسره څهٔ ئے اوکړه

زهٔ تول ذرے ذرے یم



# ...... ☆ محمدؐ ته ! ☆ ......

دلربا! محبوبا! دلربا! محبوباؐ!
تهٔ ځما ئے ،ځما، مصطفیؐ مصطفیؐ

راخورے که تیرے، تهٔ رنړا ، تهٔ رنړا
تورے شپے که اوردے، تهٔ صبا ، تهٔ صبا

ستا په لاس کښنے چراغ ، دی تیرے په هر خوا
تهٔ آقا ئے آقا ، رهنما! رهمنا !

تهٔ محبوب ئے د خدائے، ته محبوب ئے ځما
تهٔ یو نُور د الله ، درپسے انبیاء انبیاء

محبوبا! محبوبا، دلرباؐ، دلرباؐ
تهٔ ځما ئے ځما ، خو جُدا ئے جُدا

لاس لر راکه درځم ، ستا دیدار به کوم
د خوبانو شها ، محبوبا ! مصطفیؐ

# سفر

ماته د تورو شپو منزل پاتے دے
په لوئے مزل باندے به ځمه ځمه

دغه سفر ګورے ختمیږی که نه
لرے منزل ته به زهٔ ځمه ځمه

ګورے چه وخت به راته څهٔ څهٔ وائی
وخته! زهٔ ستا سره به ځمه ځمه

# " یادونه او دردونه "

دا یادونه د جانان دی دا دردونه د جانان دی
زهٔ پهِ خیال غلطومه ، پهِ وختونه تیرومه

څهٔ م سوز وساز دمینے ، دوفا جفا، خبرے
زهٔ پهِ زړهٔ تکورومه ، زهٔ پهِ روح قلارومه

څهٔ خبرے م د زړهٔ دی څهٔ ارمان څهٔ تنهائی ده
دا نغمے څما د مینے ، خپل جانان زهٔ یادومه

څه کیلے م له جانان دی څه اورونه د بیلتون
بیامے غم چرته کمیږی زهٔ پهِ ځان خوشحالومه

څهٔ یادونہ دجانان دی، څه دردونه د جانان دی

روح او زړهٔ څما نه سیزی چه دننه ئے ساتمه

نهٔ شهوت دے نهٔ خواهش دے څما مینه پاکه مینه

دا ربښتیا دی چه ئے وائیم دا ربښتیا ، چه ئے لیکمه

څما زړهٔ کښې مینه مینه م په زړهٔ کښې جانان اوسی

دا خوږے خوږے خبرے زهٔ په ځان مشغولومه

# "دلداری"

بنهَ ده دلربا ! ستا دلبری راته معلومه شوه
بنهَ ده محبوبا ! چه ستا یاری راته معلومه شوه

ما ته پته نهٔ وه، محبوبا چه مینه نهٔ لرے
گرانه دلداری ده، دلداری راته معلومه شوه

# "مړ به شم له غمه"

ستا فراق به برداشت نهٔ کړم زهٔ به مړشمه له غمه
چه تهٔ نه ئے زهٔ به څهٔ کړم زهٔ به مړ شمه له غمه

په ما تورے تیرے راغلے ګوَرے ګوَرے که صبا شی
ډیر غمونه به دے زهٔ کړم زهٔ به مړ شمه له غمه

سودائی به شم چه نه ئے ، لیونے به شم چه نه ئے
ستا یادونه به زهٔ ښهٔ کړم زهٔ به مړ شمه له غمه

چه تنها شمه یوازے په زارو زارو به ژاړم
داخپل تن به زهٔ اوبهٔ کړم زهٔ به مړشمه له غمه

داشپے ورځے د ژوندون به ګوَرے څهٔ رنګه تیریږی
ستاپه هجر کښې به څهٔ کړم زهٔ به مړشمه له غمه

شوګیرے به ستا د هجر، انتظار ستا د راتلو به
روح زهٔ ګوَرے که اودهٔ کړمِ زهٔ به مړ شمه له غمه

په بل چا مِ مینه نشی،څما ته ئے، څما ته ئے
زهٔ به څهٔ کړم زهٔ به څهٔ کړم زهٔ به مړ شمه له غمه

د سحرؔ د زړهٔ دنیا ئے ، د خیالونو دلربا ئے
بیا به چاسره لیدهٔ کړم زهٔ به مړ شمه له غمه

## ☆ ...... کړمه زۀ څنګه انکار ...... ☆

ماپه ژوندن کښې ځان له هیڅ اونۀ کړه
ژوندن م تول شو ، مینه مینه د یار

ځما د ژوند بلهَ معنی نشته دے
زۀ مینه، مینه ، ځما زړۀ کښې دلدار

دا هر څۀ ما ته، د ازله نصیب
کړمه د یار د مینے ، څنګه انکار

په ما خوږے لګی دښکلی خپل جانان خبرے
دا خو دستور دے زۀ به ئے کړمه ګفتار

خومره ښائسته او خومره خُو بږ وی جانان
ځما دلدار، ځما جانان دے د خوبانو سردار

زۀ مینه، مینه، ځما زړۀ کښں جانان
بے له جانانه ، څنګه اوکړم قرار

# دا بې خونده دلبري

چه راتلې دِ یار له نشې دا دِ خنګه دلبري ده
چه راتلې دیدار نه نشې دا بې رنګه دلبري ده

د زړګي نه زړۀ ته لار وي دا ریښتیا دي چا وئیلي
خدایه نه راځې دلبره، دا بې ډهنګه دلبري ده

جوړې ستاپه زړۀ کښې نۀ یم هسې خلۀ باندې یاري کړې
چه وفا په یار کښې نۀ وي دا بې ننګه دلبري ده

زۀ په طمعو طمعو اوسم ، د جانان لارې څارمه
ستا وصال ځما ارمان دې دا څو رنګه دلبري ده

راشه راشه خوا له راشه ، مینه مینه شه دلبره!
نه جُدا سحرَ جُدا دې ، دا بې خونده دلبري ده

# ماشوم ته !

ستا وجود دخپلې مورہ
ستا هستي دخپلې مورہ
ينه زوه ئې د مور
م نرم ستا وجود وو
وزيدې نشوې له ځايه
ځ په هيڅ نه پوهيدلې
ځ به مور سنبالولې
اژړل به
ځ به مور قلاړولې
رور به وې چه کله
ا به مور پُخلا کولې
ې تږې
تهٔ نه وې
ميش-----
ور به مړولې
چه کله کله به رنځور وې
ور دې هم رنځو روله
ولې سختې به دمور

شوګیرے به دے کولے
تهٔ تنها تنها به نهٔ وے
له غمونوله دردونو ناخبره
ـه د مور په خواکښے پټ وے
ـور د تا خوږه ملګرے
تهٔ اسید دخپلے مور
نهٔ نضر د خپلے مور
تهٔ به مور قلاولے
لوبونے لویولے
نهٔ په هیڅ نه پوهیدلے
اوس دے هیره نه کړے مور
د دنیا په هنګاموکښے
دلته کله انسان ړوند شی
ددے نول جهان نه غوره
ده ستا مور
ستا وجود له خپلے موره
ستا هستی له خپلے موره
ستا دژوند بقا له موره
ـور ژوندن دے ،مور دنیا ده
ـور عفاده

## ☆...... ناقرار یم...... ☆

ناقرار یم ناقرار نن مِ یار لیدلے نۀ دے
پریشان یم پریشان یم خوا له یار راغلے نۀ دے

زۀ په طمعو طمعو سترے کړیدلے، کړیدلے
تلوسو کښنے، انتظار کښنے ما وصال موندلے نۀ دے

## دلربا!

پریږده دلبربا! تۀ نور څما غمونه مه کوه
اوباسه له زړۀ مِ ، نور څما یادونه مه کوه

زړۀ څما تول سوے دے ځیګر څما درے درے
هیر مِ کړه دلبره! نور څما خیالونه مه کوه

عشق که پتنګان سیزی ، خو شمعے هم سوزیږی تل
صبر شه دلبره! نور څما فکرونه مه کوه

مینه مِ ختمیږی نه
زړۀ ځما بنۀ کیږی نه
هیڅ پرے نۀ پو هیږمه
ما وے چه
ژوند سیورے
کله کوزیدو کښے شی
د ژوند غوټۍ م مړاوے شی
زۀ به رژیدو شمه
مینه به مِ لاړه شي
مینه به یو یاد غوندے
حَسین خوند نۀ تیر به شی
اوشوه
داسے اونه شوه
لا خُمار خُمار شومه

ورهم زړهٔ جانان غواړی
ټول ارمان ارمان شومه
زړهٔ ښکلا ښکلا شومه
اور په زړګی بل غونډے
روح مِ غم نه ډک شولو
څهٔ جانان جانان شولو
څهٔ فراق فراق شولو
څهٔ دیار دردونه شو
هیڅ
په لاس کښے نشته دے
دواړه لاسه تش غونډے
هسے شپے صبا شولے
هسے بے نوا غونډے
هسے زهٔ رُسوا غونډے
زړهٔ ځما حیران حیران
زړهٔ ځما پریشان پریشان

# ځما مینه پښتنه

تا چه په سترګو کښې وعدې کولې
ځما د زړهٔ نه چه دې مینه غوښتنه

تا چه په سترګو کښې وفا کوله
څهٔ شوې اشنا هغه وعدې څهٔ شولې

ځما ساده زړګی دې اوژړو------
تهٔ بې وفا شوې لاپروا شوې ولې

اوس رانه لرې شوې چه مینه غوارم
راته معلوم شوې ، تا دروغ وئیلې

دا ولې؟ ولې ؟ تهٔ وعدې ماتوې
داسې دستور ما چرته نه وو لیدلې

خو ځما مینه پښتنه ده سر م نهٔ تیتیږی
په ډیره مینه کښې هم سر ځما اوچت وی ګُلې

# "غمونه"

زړهٔ څما ژړيږی په ژړا غمونه ليکمه
جانانه بے وفا ئے څکه ستا غمونه ليکمه

زهٔ پوهيږم نهٔ پو هيږم ، عشق راته ښودنه کړی
سينه مِ قيصه شوه دَ وفا غمونه ليکمه

سينه که خوږه وی خو دمينے ډير دردونه وی
زړهٔ مِ نهٔ صبريږی ، د شها غمونه ليکمه

وينے د زړګي مِ د قلم په ژبه څاڅکی شی
رو رو ترے بهيږی د خوبا غمونه ليکمه

سينه د جانان وی اوّل مينه، بيا غمونه شی
خوښ مِ د يار غم دے د اشنا غمونه ليکمه

يار که بے وفا دے خو ئے غم کښے وفا ډيره ده
خوږ د جانان غم دے زهٔ تنها غمونه ليکمه

دا خو څهٔ غم نهٔ دے د جانان او زړهٔ خبرے دی
څکه زهٔ په مينه د ليلا غمونه ليکمه

خلق خو سحرا اوّل څان او بيا جهان ګنړی
زهٔ يم مينه مينه ، د اشنا غمونه ليکمه

## ☆ما په خوږه مینه ته جانان کړلے☆

څنګه به دِ هیر کړمه، زړهٔ کښې مِ ستا مینه ده
روح مِ ناقراره وی
مینه مِ خفه خفه
زړهٔ کښې مِ اوسیږے ته
تن کښې مِ اوسیږے ته
نهٔ هیریږے زړهٔ نه مِ
نهٔ هیریږے روح نه مِ
ته خو مینه نه لرے
زهٔ وفا وفا یمه
ما په خوږه مینه
تهٔ جانان کړلے
تا مینه واپس راکړه
تا راته انکار اوکړو
زړهٔ څما صبریږی نه
تهٔ څما هیریږے نه
دومره غم دے راکړلو

دومره درد دے راکړلو
اوس چرته بنۀ کیږمه
مړ به شم له غمه زۀ
دا قصه د هجر به
دا قصه د مینے به
چرے هیره نه کړمه
مینه، مینه ، مینه وی
هیڅکله ورکیږی نه
راز دکائناتو دے
بقا د مخلوقاتو ده
ځکه زۀ جانان لرم
قصے د مینے ، مینے کړم

## ﴿ ...... بے له جانانه ...... ﴾

بے له جانانه بے له مینے ژوند مزه نه کوی
دا زۀ بے غم غوندے چه یمه، داپه مینه مینه

بغیر له مینے له جانانه م ژوند نه تیریږی
که تورے شپے صبا کومه، داپه مینه مینه

## ☆...... دخوړ په غاړه...... ☆

دخاورو ختو کُور وے په صحرا کښې اوسیدلے
چاپیره رانه شپول وے او تش وخت مِ تیریدلے

چه ورځ مِ په صحرا وے دے دنیا نه ناخبره
یا شپون وے زهٔ د ګډو، یابیزے م څرولے

چه ناست دخوړ په غاړه وږے تږے مسافر وے
بے غمه له دنیا وے، له دنیا ، نهٔ خبریدلے

سَروهلے بَروهلے ، ګیاګانے مِ کولے
سحر نه تر مابنامه، ځان له ځان ګرځیدلے

یا کُورمِ هم دے نه وے د تاسو لاندے مِ شپه وے
چه چرته ژوندون بنهٔ وے هلته زهٔ دیره کیدلے

یو ځائے مِ ژوندون نه وے، کله یو ځائے کله بل ځائے
چه کډه مِ په سَر وے ، کړیدلے دیدلے

چه لرے له دنیا وے مِ ساده ګرزان کولے
شلیدے مِ جامے وے، سوے سوے بنکاریدلے

اوبنان م څرولے ، شنهٔ وابنهٔ م تولولے
غریب دے ومه خدایه! چه م شپے صبا کولے

چه لرے د حرص نه ، تکلُف نه، دروغ نهٔ وے
شلیدلے م ګریوان وے زهٔ په هیڅ نهٔ پوهیدلے

چه رنګ مِ سوے سوے کریدلے کریدلے
چه دغه مِ ګزران وے دے دنیا نه داسے تللے

چه هیڅوک څما نه وے، زهٔ یوازے، زهٔ یوازے
زړهٔ چاودے مسافر دے وے چه چا نهٔ پیژندلے

چه لرے له دنیا وے ، خوا له هیڅوک نهٔ راتللے
تنها دے وے تنها چه ځان له ځان له ګرځیدلے

## ☆ انتظار به نهٔ کړم ☆

که زهٔ مړ شمه هم خیر دے
خوا له رانشے دلبره
بیا به نهٔ کومه مینه
ما تهٔ نه وے پیژندلے
ځما مینه پښتنه ده
چاته نهٔ نیسی لاسونه
کلی نه کیږی
په زور
مینه څنګه په زور اوکړم
خیر دے مهٔ م راځه خواله
انتظار به دے نورنهٔ کړم
ځما روح که خفه کیږی
نو خفه دے وی دلبره
بیا به نهٔ څارمه لارے
بیا به نهٔ کړم انتظار
چه ستا نیت دیاری نهٔ دے
دمنت خبره نهٔ ده

که زۀ مړ شمه هم خیر دے
خواله رانشے دلبره
ستا فراق کښېے که زۀ ړوند شم
ستا بیلتون که لیونے کړم
شم بے غمه به له مینے
څما لاره به شی خپله
او ستا خپله لاره بنۀ ده
که دنیا مِ توله ورانه
ورانه بنۀ ده
ورانه بنۀ ده
خو چه رانشے دلبره!
زۀ که مړ شمه هم خیر دے

# غزل

مینه تا له درکړه تاځما پورے خندا کړه
زۀ مینه مینه مینه، تاځما سره جفاکړه

اوس مه پریږدوه مینه، د وفا سره وفاکړه
تا پریښنودم یوازے اوس ځما زړګے ژړاکړه

وعدے به دے کولے چه زۀ ستا یم ته ځما ئے
دا ولے؟ ولے؟ ولے؟ اوس پیغور راته دنیا کړه

چه تۀ دلبره داسے شوے ګیلے په زۀ له چاکړم
ما مۀ پریږده دلبره! تاخو مینے ته مِ شاکړه

یاری څۀ ګناه نه ده یاره تۀ ولے جدا شوے
آزار دے راله زړۀ کړو تاځما مینه رُسوا کړه

ځیګر باندے زخمی یم زۀ له غمه به دے مړشم
په مینه مینه راشه خپل سحرؔ سره وفا کړه

# چه جُدا شے

چه تهٔ را نه جدا شے ... ژړا ژړا به ژاړم
چه پریږدے مِ یوازے ... ارو زارو ... زاړم
ستا غمونه به م زړهٔ کښے
په سلګو سلګو به ژاړم
چه تهٔ راسره نه ئے
څما ژوند به نهٔ وی اور وی
زهٔ هسے به سوزیږم
بغیر له تا به ورځے شپے مِ
د ژوند خنګ تیریږی
تهٔ څما د روح ملګرے
تهٔ څما د زړهٔ ملګرے
تصور کبښ به مِ تهٔ ئے
زهٔ تنها تنها به شمه
سودائی غوندے به شمه
ستا مینه به یادومه
تیر وختونه به یادومه
بیلتون به خوږ وی مِ

ستا فراق به ژړوی م
ګوره
څهٔ حال به م کیږی
هسے نه چه روح م لاړ شی
ډیر خفه خفه به یم
بے نوا غوندے به یمه
زهٔ رُسوا رُسوا به یمه
بیا زهٔ مینه به له چاسره کومه
څما مینه به ژړیږی
څما مینه به دردیږی
چه جدا شے
تهٔ له مانه
په سلګو سلګو به ژاړم
په زارو زارو به ژاړم

# بیا به ارمان راپسے اوکړے

بیا به لټون راپسے اوکړے
بیا به
ما ګورے زۀ به نۀ یم
بیا به
ارمان راپسے اوکړے
بیا به ځوانی ځمانه تلے
بیا به دا ځوانه مینه نۀ وی
بیا به مِ زړهٔ کښ
حُسن نۀ وی
دلبره!
وخت مِ دځوانئ دے
مونږ نن ژوندی
سبا به نۀ یُو
دلبره!
راشه ژوند فانی دے
ما به زۀ خاورے خاورے یمه
دیر ارمانونه به ځماکړے

# بیا به ارمان راپسے اوکړے

بیا به لټون راپسے اوکړے
بیا به
ماګورے زهٔ به نهٔ یم
بیا به
ارمان راپسے اوکړے
بیا به ځوانی ځمانه تلے
بیا به دا ځوانه سینه نهٔ وی
بیا به مِ زړهٔ کښې
حُسن نهٔ وی
دلبره!
وخت مِ دځوانۍ دے
مونږ نن ژوندی
سبا به نهٔ یُو
دلبره!
راشه ژوند فانی دے
سا به زهٔ خاورے یمه
دِ ارمانونه به ځما کړے

دے ژوندگئ کښې وفا نشته
بیا به جهان راپسے . کړی
زۀ به نۀ یم
نۀ به مینه، نۀ به زۀ یم
راشه، راشه!
راشه، راشه!
اے دلبره!
ماسره مینه ، په ژوندون اوکړه
خما د مینے سره مینه اوکړه
بیا ارمانونه به تۀ ډیر اوکړے
په ټول جهان کښې به هیچرته نۀ یم

# ☆☆څما د لرې کلې یاره!☆☆

څما د لرې پلو یاره! څما د لرې کلې یاره!
عمرونه تیر شولو یوازے، لږ خواله راشه خدائے دپاره

لاروکوڅو ته ډیر ډیر ګورم، چه به څما لورې ته راشے----
زۀ ستا په مینه کښې رنځور یم ، جوړے تاهیر کړمه دلداره

بیا به زۀ داسے یارې نۀ کړم بیا به زۀ داسے مینه نۀ کړم
دڅانه تنګ شومه دلداره، ټولے دنیا نه شوم بیزاره

راته ستا مینه ډیره ګرانه، داستا دیدن راته ډیر ګران دے
له ډیر غمه به دے مړ شم، ستا په یادونو کښې بیماره

د لرې کلې یارې غم وې، بیا به زۀ داسے یارې نۀ کړم
پریږده چه روح م لږ آرام کړې، اے څما ستړے انتظاره

زړۀ م تنګیږې ډیر خوږیږې ، م په زړګې څۀ څۀ تیریږې
څما د لرې کلې یاره! څما د زړۀ بنکلے دلداره

لږ خو ځمونږ کلی ته راشه، داستا راتلهٔ ځما ارمان دے
خدائیگو چه ډیر یمـ [illegible] ـرے ، لږ راشه راشه مادپاره

بغیر له تانه زهٔ نیمگړے، ذرے ذرے دِ کړم یادونو
راشه قرار ورکړه زړگی ته، ځما ذسوی زړهٔ قراره

لږ خو زمونږ کلی ته راشه، ډیر مودو نه زهٔ بیلتون کړم
ځما د لری کلی یاره! نن م غمونه ډیر بیسیاره

تورے تیارے دبیلتانهٔ دی، ساه م بندیږی روح م خیژی
زړگے په تا پسے غمژن دے، روح م ژړیږی ناقلاره

داستا بیلتون توره بلاده، زهٔ جوړ خوړلے دے بلایم
نه مِ څه دم نه م پاړو شته، دلبره راشه خدائے دپاره

ځما د لری پلوِ یاره! ځما د لری کلی یاره
ستا په یادونو ډیر خوږیږم لږراشه راشه خدائے دپاره

## ډېره لږه زندګي ده

راشه! راشه! دلربا ډېره لږه زندګي ده
شه وفا، وفا، وفا، ډېره لږه زندګي ده

میخانه کښې نن یو شور سبا هر څۀ به نسکور
زۀ تنها یمه تنها، ډېره لږه زندګي ده

نن دے ژوند سبا به مرګ، مینه، مینه به تالا
مونږ به لاړ شو له دنیا، ډېره لږه زندګي ده

زۀ به نۀ یم په دنیا، بیا به ما پسے خفه
خواله راشه محبوبا، ډېره لږه زندګي ده

دے دنیا کښې به مونږ نۀ یو، دے فضا کښې به مونږ نۀ یو
مکوه! تۀ جفا، ډېره لږه زندګي ده

ډیر ناوخته دے دلبره، وار زمونږ ګورے تیریږی
راشه! راشه! هوشربا، ډیره لږه زندګی ده

ولے؟ ولے؟ تهٔ جُدا، مینه نه ده څه ګناه
تهٔ څما شه او زهٔ ستا، ډیره لږه زندګی ده

زهٔ به نهٔ یم په دنیا، تهٔ به نهٔ ئے په دنیا
مینه، حُسن به تالا، ډیره لږه زندګی ده

مونږ به څوله دے دنیا، شه وفا وفا وفا
مینه، مینه، شه خوبا، ډیره لږه زندګی ده

بیا به رانشی سحرٓ بیا رانشی ژوندون
عمر تیرشو ټول جُدا، ډیره لږه زندګی ده

## ☆ ......که وصال کړے که هجران...... ☆

شپه او ورځ دے یادوسه م دزړهٔ دلربا تهٔ ئے
هیروم دے نهٔ هیرینے م دزړهٔ مشغولا تهٔ ئے

ژوند دتور تیرو ډک دے نن غمونه دی غمونه
د اوږدو تورو تیرو، تورو شپوم سبا تهٔ ئے

زړهٔ م غواړی یارنه مینه، زړهٔ م غواړی د یار د وصل
د هجران تورو تیرو کښے ، ځما بنکلے رنړا تهٔ ئے

واوره ، واوره محبوبا! دا زړهٔ وایمه ریښتیا!
په بل چام مینه نشی م دزړهٔ دلربا تهٔ ئے

تهٔ م تن تهٔ م دنیا، ځما د روح آواز
بله مینه نشه زړهٔ ... م د زړهٔ تمنا تهٔ ئے

که نزدے ئے که خدا، که وصال کړے که هجران
م د رزه دربا نه ئے م دروح محبوبا تهٔ ئے

زهٔ به خهٔ کرم نور جهان ، زهٔ به خهٔ کړم نور خوبان
م وفا سره وفا کړه څما لویه دنیا تهٔ ئے

دلربه شه محبوبه شه تهٔ خوبا شه د سحر
م دمینے شمع ته ئے خوږمره ښکلے ښکلا تهٔ ئے

## ...... ☆ پښتو ☆ ......

پریږده سودائی دے شم پریږده لیونے دے شم
وینه ستنه نرم، یا نه وصال نهٔ غواړم

حسن عارضی غونډے ، مینه حقیقی غونډے
مړ دے شم زهٔ مړ دے شم مینه په سوال نهٔ غواړم

# قطعه

ستا په یادونو مِ زړګے ستړے شو
ګوَرے چه ما به یادوے او کنه

ستا په غمونو لیونے، لیونے-----
ګَورے تهٔ یاد به م لرے او کنه

په ما خوږے لګی بس ستا خبرے
تهٔ به خبرے څما کړے او کنه---

## ...... ☆ غزل ☆ ......

زخمونه دی خوړیږی، وختونه دی تیریږی
عُمرونه دی تیریږی خوبونه دی هیریږی

لاسونو کښې څۀ نشته جولۍ دخیاله ډکه
سودا م ډیره ډیره دردونه دی زیاتیږی

نه وصل نه م مینه، خوړیږمه ،خوړیږم
خفه خفه م زړه دے زړګے ځما خوړیږی

دسرو ګلو غوټۍ وم رژیږمه، رژیږم
زۀ خاورے خاورے کیږم داځۀ راسره کیږی

په ستره دنیا ګۍ کښې محبوب دسحرؔ نشته
نصیب باندے ژړیږم، زړګے ځما دردیږی

## ﴿دابه تیر شی دابه هیر شی﴾

داوختونه، داسبا، دابیگاه

داځوانئ، دابنکلا

دابهار، داګلونه

دامستی، رنګینی

دا خندا، دا ژړا

دا نازونه

دا غرور

اوداحُسن او دامینے

داغمونه دافکرونه

فریبونه ، حرصونه

داتلل، دا راتلل

داخوبونه ، دامزے، خوشحالی

داچرچے

دا زور، او دا شور

ذا اختیار

بې بسی

دا دروغ، دا ریښتیا

امیدونه، ارمانونه

احساسونه، حسرتونه

دا خودی، بې خودی

دا دنیا، دا څیزونه، دا ښکاره، دا فنا دا رازونه

دا هرڅهٔ، دا هرڅهٔ

دا به تیر شی

دا به هیر شی

دا به ورک شی

دا به هیڅ شی

بیا فنا ده فنا، ده فنا!

# خپل خوبا ته!

م خوبا ئې دلربا ئې

م دلبر ئې م جانان ئې

څوک م نشته

تهٔ څما ئې، تهٔ څما ئې

دا دستور م د مینې

هیڅوک نهٔ هیرېږی مانهٔ

زهٔ خاموشه غلې غلې

څه نادان نهٔ یم دلبره!

بې وفا نهٔ یم دلبره!

زهٔ وفا، وفا، وفا، یم

چاچه لاس ساله راکړې

بیا څما وی، بیا څما وی

م یاری تر خاورو ، خاورو

بیا په مرګ رانه بیلیږی

م ژړګے وړوکے نه دے

ځایوم زۀ جهانونه

روح او زړۀ چه کله ښکلے

مینه مینه، بیا یو نُور وی

ځما مینه د ژړګی وی

ځما مینه هم د روح وی

ځکه وائیمه ښکاره

ځکه کړمه مینه، مینه

م خوبائے ، دلربائے

م دلبر

ته مِ جانان ئے

## رنځور رنځور

تپوس ـه خو ـز راشه زهٔ بیمار یمه دلبره
له تنه م روح دروځی ناقرار یمه دلبره

دا ولے نهٔ پوهیږے په خپل قدر، احترام
ژړیږم نهٔ بنهٔ کیږم ستا دلدار یمه دلبره

رنځور یمه زهٔ ډیر، ګورے، ګورے که زهٔ بنهٔ شم
ډیر لرے یم له تا، په بل دِیار یمه دلبره

سلګئ م آخری دی م وختونه آخری دی
زهٔ ځمه ځمه لږ ایسار یمه دلبره

سودے م ډیرے اوشوے چه رنځور رنځور زهٔ یمه
تل لارے زهٔ خارمه، انتظار یم، انتظاریمه دلبره!

یو دوه ورځے ژوندون وو ماخوستا له مینے ځارکهٔ
د خدائے دپاره راشه زهٔ بیمار یمه دلبره

ما داسے غم لیدلے په دنیا هیچرته نهٔ وو
زیاتیږم نهٔ بنهٔ کیږم جوړ آزار یمه دلبره

# ﴿ځما ارمانه﴾

ځما ارمانه!

ځما خوبونو!

اے ارزوګانو اے د زړهٔ درده!

بس دے------

بس دے--- ---

لږ په قلار شئ

ژوندون لاړ

وخت هم تیر شو

زهٔ تیریږم---------

زهٔ هیریږم---------

نمر د ژوند په غورزیدو دے

چه بل ژوند لره ځۀ یوسم

چه خپل خدائے لره څۀ یوسم
هسے نه چه مختورن یم
دے دنیا کښے مینه نشته
دے دنیا کښے وفا نشته
دے دنیا کښے خوابۀ نشته
دے دنیا کښے یاری نشته
بے خوندی ده
بے خوندی ده

هرڅۀ ، هرڅۀ
ټول دروغ دی

کاش! چه ماکښے مینه نۀ وے
کاش! چه ماکښے وفا نۀ وے

دنیا ټوله بے وفا ده
دنیا ټوله بے وفا ده
او رۀ مینه، مینه، مینه

## د غم هیڅ درک هم نه وو

سم آزاد به ګرځیدلو
څۀ به نۀ محسوسیدل
مونږه بیرے به کولے
انځران به موکول
په لښتو به مو لا سبل
او
خوږونو ته به تللو
په هر ځائے به ګرځیدلو
او
کُوتو ته به ختلو
د هر چاکره به تللو
او هرڅۀ به موکول
خپل همځولی به مو ډیر
په کوخو کښے به وو ناست
مونږه لوبے به کولے
د خندا خندا ژوندون وو
د غم هیڅ درک هم نۀ وو

څۀ کینه او حسد نۀ وو
نۀ حرص او نۀ دروغ
ژوندون نۀ وو
باد شاهی وه
سود وزیان نه ناخبره
نۀ د مرګ نه څۀ خبر وو
نۀ دنیا مو پیژندله
اوس خو ژوند نۀ دے
جنجال دے
سم دغم دپاسه غم دے
لا د مرګ قیصۍ دی نورے
چه ئے وایم
لا اوږدیږی
چه ئے وائیم لا ډیریږی
چه ئے وائیم نۀ ختمیږی

# دسوالګری فریاد

خدایه څله زۀ پیدا شوم

چه م

رزق دلته نۀ وو

لاس م بل ته وی نیولے

په سوالونو رزق غوارم

که سوالونه نۀ کوومه

ساه م خیژی-------

څوک رحمان دلته کبش نشته

چه د رَحم څادر خور کړی

او ماخلاص کړی له لوئے غمه

زۀ ماشوم ومه

بوډا شوم

سوے سوے لا سوالګرے

نۀ د څان شوم

نۀ د بل شوم

نۀ د دین نه د دنیا شوم

نۀ م خدائے چرے

سم یاد کړو
هسئ هسئ
ژوند تمام شو
ځنې ځنګه ځنې ځنګه
او ځما داخواره برخه
خدایه تن کښې م زوګې دے
خدایه تن کښې م هم روح دے
چه م دا دنیا شوه ورانه
بله هم به داسې ورانه
ربه! ربه!
نۀ پوهیږم، نۀ پوهیږم
ولے ؟ ولے ؟
داسې اوشو
جوړ ازل نه
ګنهګار یم
جوړ ازله نه
زۀ خوار یم

ما خپله مینه بیا واپس واخسته، زهٔ دبیلتون تورے بلا خوړلے

بیا به

زهٔ مینه مینه نهٔ کومه

بیا به

جانان جانان زهٔ نهٔ کومه

بیا به

اظهار چاته د مینے نهٔ کړم

بیا به یادونه د هیچا نهٔ کوم

بیا به د روح رباب زهٔ نهٔ چیړمه،

دے بیا خوږے سندرے وائی

د چا په رنګ به زړهٔ خپل نهٔ غولوم

بیا به امید دچا د مینے نهٔ کړم

بیا د وفا نغمے به نه وائیمه

بیا به دمینے وعدے نۀ کومه

بیا په خوږو سترګو

کتل به نۀ کړم

بیابه سودا دَ دلربا نۀ کوم

زړۀ له به سَل سوګنده

ورکړمه زۀ

چه بے وفا دلربا نۀ یادوی

روح ته به ډیر ډیر زۀ منت اوکړمه

چه بے وفا دلربا نۀ یادوی

ماله دے ډیرے مینے غم راکړو

ماله وفا ډیره سزا راکړه

بیا به دچا سره زۀ مینه نۀ کړم

بیا به دچا سره وفا نه کوم

بیا به دچا سره وفا نه کوم



## ☆☆☆☆ټپه☆☆☆☆

یاری د سَیال سرې پکار ده

ځان ته به ګُوری ستا به ډیر قدر کوینه



## ایم طارق سحرؔ

ایم. اے .پښتو، پښتو آنرز
ایم. اے. اردو
ایم.اے .اسلامی تعلیمات
بی. ایډ
کسب : دَ ادبیاتو ښوونکے
محکمه: تعلیم

چاپ کتابونه
(۱) د دشت لارو ے
(۲) ژوند یو سَراب
(۳) یادونه او دردونه

کلے : شاه ډهند، لوند خوړ (مردان)